# هیواد

ورځپانه

مؤسس: عبدالرووف بېنوا

د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز

یکشنبه د رمضان المبارک ۱۶مه ۱۴۴٦ق کال، د کب ۲٦مه ۱۴۰۳ ل کال، د مارچ ۱٦ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵٦۹مه، پرله‌پسې ګڼه ٦۵۹مه، اتمه دوره


امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | شانزدهم |
| ایام | یکشنبه |
| تاریخ | ۱۴۰۳/۱۲/۲٦ |
| افطار | ٦:۰٦ |
| عشاء | ۷:۲۷ |
| ختم سحری | ۴:۳۱ |
| آذان فجر | ۴:۳٦ |

## هرات کې « د حوت د ۲۴مې پاڅون » په یاد غونډه وشوه

په هرات کې د حوت د ۲۴مې د خونړي پاڅون په یادغونډه کې د اسلامي امارت سیمه‌ییزو چارواکو او زرګونو هېوادوالو ګډون کړی و. د هرات ولایت سرپرست، شیخ اسلام جار دا ورځ مهمه بللې او د ټولنې په ټولو برخو یې ژور اغېز وګڼه، چې په هېواد کې خپل یووالی او پيوستون وساتي. د ۱۳۵۷ کال د حوت په ۲۴مه، په هرات کې زرګونه خلک د هغه وخت د کمونیستي رژیم پر ضد راپورته شول او د درېوو ورځو لپاره یې د ښار کنټرول په لاس کې واخیست، خو دا پاڅون... **۳مخ**

اسلامي امارت:

## د تاجکستان او قرغزستان ترمنځ د پولې د ترسیم تړون لاسلیکول یو مثبت ګام دی



د افغانستان د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت د یوې اعلامیې په خپرولو سره ویلي، چې د تاجکستان او قرغزستان جمهوریتونو ترمنځ د پولې د ترسیم تړون د لاسلیکولو هرکلی کوي. اعلامیه زیاتوي: د دواړو ورونو هېوادونو ترمنځ د تفاهم له لارې د دغه اوږدمهالي اختلاف هواري د سیمې د ثبات، اقتصادي ودې او د متقابل باور د پیاوړتیا په لور یو مثبت ګام دی. د دې وزارت په وینا؛ د... **۳مخ**

## د افغانستان او قزاقستان ترمنځ د اقتصادي اړیکو پر پیاوړتیا ټینګار وشو



د بلخ والي محمد یوسف وفا د قزاقستان له سفیر ګزیز اکباسوف سره لیدنه کړې. په دې لیدنه کې دواړو خواوو د افغانستان د اقتصادي اړیکو د پیاوړتیا، د دواړو هېوادونو د سوداګرو ترمنځ پر همغږۍ، د تولیداتو پر زیاتوالي او په افغانستان کې د پانګونې اسانتیاوو په اړه خبرې کړې دي. د بلخ ولایت د مقام رسنیز دفتر وايي: ... **۳مخ**

## افغانستان کې ۲۷هوايي ډګرونه فعال دي

د ټرانسپورټ او هوايي چلند وزارت په هېواد کې د بهرنیو هوايي شرکتونو د فعالیتونو د بیا پیل لپاره د ګڼو آسانتیاوو له برابرولو خبر ورکوي. د دې وزارت ویاند زیاتوي، دمګړۍ په هېواد کې دوه داخلي او اووه بهرني هوايي شرکتونه فعالیت لري. د سوداګرۍ او پانګونې خونه په افغانستان کې، د بهرنیو هوايي شرکتونو فعالیتونه، د اقتصادي ودې او همدا راز د مسافرو د تګ راتګ لپاره مهم ګڼي. د ټرانسپورټ او هوايي چلند د معلوماتو له مخې اوسمهال په افغانستان کې ۲۷هوايي ډګرونه فعال دي، چې له دې منځه پنځه یې نړیوال هوايي ډګرونه دي.




د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت:

## له ۲۶میلیونو فعالو سیمکارټونو ۱۸میلیونه یې ثبت شوي






د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت مسئولین وايي: دا مهال هېواد کې د ګرځنده ټیلفونونو نږدې ۲۶میلیونه سیمکارټونه فعال دي چې له ډلې یې ۱۸میلیونه سیمکارټونه بیاثبت شوي دي.

د دې وزارت ویاند عنایت‌الله الکوزي پرون پر خپله اېکس‌پاڼه لیکلي، چې د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو راهیسې د سیمکارټونو د ثبت بهیر د یوې هراړخیزې کړنلارې له مخې پیل شوی او لاهم روان دی. د نوموړي په وینا، په ټول هېواد کې دا مهال د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت تر څارنې لاندې... **۳مخ**

## د لغمان د ټرانسپورټ آمریت څه باندې ۳۳ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي

د لغمان ولایت د ترانسپورټ آمریت مسئولین وايي چې یاد آمریت د ۱۴۰۳ مالي کال په تېرو ۱۱ میاشتو کې څه باندې ۳۳ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي.

د یاد ولایت د ترانسپورټ آمر شیرین اغا اخندزاده باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې دغه آمریت په یاده موده کې ۳۳ میلیونه ۱۵۷ زره ۵۲۵ افغانۍ عواید راټول کړي، چې دا د ۱۴۰۲ مالي کال په پرتله ۶۰ سلنه... **۳مخ**

## فراه کې ستر معیاري تفریحي پارک جوړېږي

د فراه ښاروال مفتي سردار محمد مرصاد له باختر اطلاعاتي آژانس سره په وینا یې د ښاروالۍ کرنې او هوساینې لپاره ځانګړې او معیاري ځای نه لري، خو




ځانګړې مرکه کې ویلي، چې فراهي وګړي او په ځانګړې توګه ځوانان د تفریح، آسانتیا اوبو لګولو او مالدارۍ ریاستونو په هلوځلو او د یوې منلې هوکړې له مخې د نوروزي سړک په سلطان میر سیمه کې غره ته څېرمه یې د کرنې ریاست څخه شاوخوا ۱۳۴جریبه ځمکه بېله کړې، چې د خصوصي سکتور له لارې او د ځانګړې پلان له مخې به په نږدې راتلونکې کې پرې معیاري تفریحي پارک جوړ شي. نوموړي همدارنګه زیاته کړه، چې دغه تفریحي پارک به د جومات، د اوداسه ځایونو، ټټیو، د لوبو ډګرونو، خوړنځایونو او د ناستې غرفو درلودونکی هم وي. د فراه ښاروال مرصاد همدارنګه له ټولو ښاري ... **۳مخ**

## ننګرهار کې د یوې پروژې رغنیزې چارې بشپړې شوې

د جلال اباد ښاروالۍ مسئولین وايي ،چې د یاد ولایت په دوو ناحیو کې د څه باندې ۷ میلیونو افغانیو په لګښت د یوه واش د پخولو چارې بشپړې شوې دي.

د جلال اباد ښاروالۍ رسنیز دفتر وايي، چې د دغه ولایت په پنځمې او اوومې ناحیو کې د یاد ولایت د ښاروالۍ ریاست له داخلي عوایدو څخه د ۷.۵ میلیونو افغانیو... **۳مخ**

## کابل کې د خبریال ملي ورځ ولمانځل شوه

د خبریال ملي ورځ پرون په پلازمېنه کابل کې د افغانستان د خبریالانو ملي کور له لورې یوې غونډې په ترڅ کې ولمانځل شوه. د یاد مرکز رئیس سیدیاسین متین په دغې



غونډه کې د یو شمېر رسنیو د مسئولینو، خبریالانو او د پوهنتونونو د استادانو په شتون کې وویل، چې د افغان خبریالانو د ملاتړ او د هغوی د ستونزو د حل په موخه به خپلو هڅو ته دوام ورکړي.

نوموړي همدارنګه اطلاعاتو ته د لاسرسي په برخه کې د حکومت د لا ډېرې پاملرنې غوښتنه وکړه.

ده زیاته کړه، چې د رسنیو نړیوالو ملاتړو بنسټونو لکه څنګه، چې لازمه وه هماغه ډول خپل مسئولیتونه نه دي ادا کړي .په ورته وخت کې د رنا پوهنتون استاد ارشاد عظیمي په دغې غونډه کې وویل، چې رسنۍ د اطلاع رسونې تر څنګ د محیط او ټولنې په څارنه او د افکارو په مثبت تغیر او نظم کې ډېر مهم رول لوبوي... **۳مخ**

مسئولین:

## کابل کې د ۸۲ پراختیايي پروژو چارې روانې دي




د کابل ښاروالۍ فرهنګي سلاکار نعمت الله بارکزي د هېواد ورځپاڼې خبریال سره مرکه کې ویلي ، چې د ۱۴۰۳ کال له پیله تر اوسه پورې د کابل ښاروالۍ له لورې... **۳مخ**

## روژه؛ د صبر او غوره اخلاقو درس

۲

## تلاش‌های مضاعف برای گسترش و توسعه خطوط ریلی

۲

## لوګر کې ۶۰۰ جریبه نوي بڼونه جوړېږي

په لوګر ولایت کې د سږې میاشتې اداري له لورې د ۳۰ زره مثمرو نیالګیو په وېش سره ۶۰۰ نوي بڼونه جوړېږي. د دې پروژې موخه د اقلیم بدلون سره مبارزه او بڼوالۍ ته وده ورکول دي.

د سرې میاشتې د سوبلې زون رئیس مولوي منهاج‌الدین هاشمي وايي، چې دا نیالګي د افغاني سرې میاشتې ټولنې له خوا د... **۳مخ**

## سرلیکنه

# روژه؛ د صبر او غوره اخلاقو درس

روژه یـوازې د نـه خوړلـو او نه څښـلو په معنی نـه ده، بلکې د روح د پاکوالـي، صبـر، زغم او ښـو اخلاقـو تمرین دی. دا میاشـت موږ تـه دا درس راکوي چې څنګه خپل احساسـات کنټرول کړو، څنګه له خپلو کورنیو سـره نرمي وکړو او څنګه د ټولنې سـالم غړي شـو. خو افسـوس، چـې ځینې خلک د روژې لـه حکمت څخه ناخبره دي او د دې پر ځای چې د دې میاشـتې برکتونه ترلاسـه کړي، خپله حوصلـه بایلي، کورنۍ جګـړې رامنځتـه کوي او د خپلـو مېرمنو او ماشـومانو زړونه ماتوي.

روژه مـوږ تـه د صبـر روزنه راکوي. کـه څوک موږ ته سـپکې خبرې وکړي، سـنت دا دی چې ورته ووایو: «زه روژه یم.» خو مـوږ برعکس عمـل کوو؛ د لـوږې او تندې په پلمـه کورنۍ ته غوسـه کېږو، کوچنۍ خبرې لویو شخړو ته اړوو او د حوصلې د نشـتوالي لـه امله خپلو عزیزانو ته روحی زیان رسـوو. دا د روژې له روح سـره ټکر لري. د نبوي لارښوونو له مخې، روژه باید زموږ اخلاق لاپسـې ښه کړي، نه دا چې موږ له پخوا بدتر کړي.

د روژې میاشـت کې د ځینو خلکو د خراب چلند تر شـا مهم لامل د نشـه‌يي توکو اعتیاد دی. هغه کسـان چې د سګرېټو، نسـوارو یا نورو نشه‌يي توکو عادت لري، کله چې روژه نیسي، د دې توکـو د نشـتوالي له امله بې‌حوصلې کېږي، ژر غوسـه کېږي او د نورو حقونه تر پښـو لاندې کوي. دا حالت نه یوازې دوی تـه زیان رسـوي، بلکې د کورنۍ فضا هـم خرابوي. روژه یو غوره فرصت دی چې دغه ناوړه عادتونه پرېښـودل شي او خپل بدن او ذهـن له دې زهرجنو توکو پاک کړو.

کـه موږ پوه شـو چـې روژه د صبر، زغـم، نرمـۍ او وروروله میاشـت ده، نـو زمـوږ رویه به بدله شـي. راځـئ، د روژې په برکتونـو ځـان پـوه کـړو، خپله ژبـه کنټـرول کړو، لـه خپلو مېرمنو، ماشـومانو او کورنۍ سره ښـه چلند وکړو. که لوږه او تنده موږ ته غوسـه راولـي، نو دا باید درک کـړو چې دا زموږ کمـزوري ده، نه د نورو ګنـاه. د روژې اصلي هدف هم دا دی چـې زموږ نفـس کنټرول شـي او موږ له بـدو عادتونو خلاص شو.روژه یوازې د خوراک او څښـاک پرېښودل نه دي، بلکې د روح پاکوالـی، صبر، زغم او ښـه اخـلاق دي. که روژه زموږ چلند ښـه نه کړي، نو مـوږ باید له ځانه پوښـتنه وکړو چې ایا مـوږ روژه نیولې که یوازې وږې پاتې شـوي یو؟ دا میاشـت د اصـلاح فرصت دی. راځـئ، لـه دې فرصته ګټه واخلو، ښـه اخلاق خپل کړو، له نشـه‌يي توکو ځان وژغورو او خپلو کورنیو ته خوشحالي ور وبښو.

# د افغانستان، ایـران او تـرکمنستان تـرمنځ د اقتصادي ډیپلوماسۍ راتلونکې

**رحمت‌الله فیضان**

افغانسـتان، ایـران او ترکمنسـتان د جغرافیایـي موقعیـت او تاریخي، کلتوري او اقتصادي اړیکـو له امله د سـیمه‌ییزو همکاریـو ډېری وړتیاوې لري. افغانسـتان که څه هـم په وچه کـې را ګیر هیواد دی او نړیوالو بازارونو تـه د لاسرسي لپاره لـه خپلو ګاونډیو سره پراخو همکاریو ته اړتیا لـري، خو له دې سره سره بیاهم افغانسـتان د آسیا پـه زړه کې موقعیت لري او د مرکزي او جنوبي آسیا، منځني ختیـځ او چین ترمنـځ د یوه مهم اتصالي پلـه حیثیت لري. د دې سـتراتیژیک موقعیت له امله، افغانسـتان کولای شي د سـوداګرۍ، ټرانزیټ، انرژۍ او سـیمه‌ییزو همکاریو لپاره یو مهـم دهلېـز وي. ایران د خپلـو سـتراتیژیکو بندرونو لـه لارې د مرکـزي آسـیا او فارس خلیـج ترمنځ د ارتباطي پله رول لري او ترکمنسـتان د سـیمې د طبیعي ګاز له سـترو صادروونکو څخـه دی، چې د انرژۍ برخـه کې ځانګړې اهمیت لري.

د دې هېوادونـو ترمنـځ د اقتصادي ډیپلوماسـۍ غښتلتیا کـولای شي د سـوداګرۍ د اسـانتیا، د ګمرکـي خنډونـو د کمښـت او د ګډو بنسټیزو پـروژو د پراختیـا لـه لارې اقتصـادي وده او سـیمه‌ییز ثبات پیاوړی کړي. د خواف-هـرات اورګاډي کرښـه، د ترکمنستان-افغانسـتان د ګاز نللیکـه او د چابهـار بنـدر پرمختیا د دې همکاریو ښـې بېلګې دي.

د دې همکاریـو د پیاوړتیـا لپاره، د « افغانستان، ایران او ترکمنسـتان ترمنځ د اقتصادي ډیپلوماسـۍ راتلونکـې» تر عنـوان لانـدې درې اړخیـز علمـي او تحقیقـاتي سـیمینار ترسره کول مهم دی. دا ناسـته بایـد د اقتصـادي همکاریـو تاریـخ، ګـډو بنسـټیزو او سـوداګریزو پـروژو، طبیعي سرچینـو، پانګونې فرصتونو، سوداګریزو لارو او د چابهار بنـدر او د لاجـوردو دهلېز د رول ارزونه وکړي.

سربېره پـر دې، سـوداګریز ټرونونـه، تعرفـوي خنډونه، بانکي محدودیتونه، بندیزونه او د مالي تبادلـو ننګونې باید وڅېړل شي. همدا راز، د ګازو او برښنا د صادراتو او وارداتو فرصتونـه، د سـوداګرۍ او پانګونـې پراختیـا، او د اقتصـادي همکاریو د پیاوړتیا لارې چارې باید د بحث برخه وي.

د حکومتونـو او خصـوصي سـکتور لپـاره د عمـلي وړاندیزونـو وړانـدې کول، د ازادو سـوداګریزو زونونو رامنځتـه کول، د ګـډو مالي میکانیزمونـو پراختیـا او د تعرفو کمښـت، هغه اقدامات دي چې د دې درېوو هېوادونو ترمنـځ اقتصـادي اړیکـې لا پراخولی شي.

هـرات چـي د افغانسـتان د اقتصادی قطب حیثیت لري او له ایران او ترکمنسـتان سره د ګډو پولو ترڅنګ له مشـهد او مـاري سره ژور تاریخـي مشـترکات لري ډېر ژر به ان شـاءالله د دا ډول یو علمي او تحقیقاتي سمینار کوربه وي.

# له اړمنو کسانو سره مرسته وکړئ

**نعمت الله**

الله تعالی په خپـل لوی حکمت سره خپلې د خیر لارې د بشریت د سعادت او نېکمرغۍ لپاره پرانیسـتې دي. یوه له دغو ډالیو څخــه، د روژې مبارکې میاشـتې روژه ده، له شک پرته په دې میاشـت کې چې له ښیګنو او برکت څخــه ډکه، د نفــس د تزکیــې او پر باطني پاکــوالي سربېره د الله تعالی پر وړاندې عبادت دی. په دې میاشت کې د انســان اخلاقي او ټولنیز اړخونه او هم د هغــه معنویت روزل کېږي او د مســلمانانو ترمنځ د ترحــم، عاطفې، همغـږۍ او خواخـوږۍ روحیـه رامنځته کېـږي. روژه لرونکی کس، په ځانګړې توګه هغه شـتمن،چې د ایمان او صداقت له مخې روژه ولري؛ هغه مهال، چې لوږه او تنده احســاس کــړي، د بېوزلــو او ناتوانو کســانو حالت ته یې پــام ور اوړي. د بېوزلو او ناتوانو کســانو د درد احساســول په حقیقت کې د اللــه تعالی او د نبي کریــم صلي اللــه علیه وسـلم اوامرو ته غاړه ایښــودل او لــه هغوی څخه اطاعت کول دي. د بېوزلو لاسـنیوی او محتاجو کســانو سره مرسته د دې میاشتې د فضایلو درک کول دي، ځکه دا میاشت، بېوزلو ته د مرستې میاشت ده. همدارنګه د عبادت د قبلېدو لپاره، غوره ده، چې له ټولو لنډې او اغېزمنې لارې ولټــوو، چې یوه لــه دغو لارو څخه د خدای مخلوق ته خدمت دی.

له بلې خوا؛ بېوزلو ته مرسته د اسلامي عدالت له مظاهرو څخه ده او دا عمل د اســلامي ټولنې د ســتنو د ټینګښت لامل کېږي او نن ورځ ښه فرصت دی ،چې دا کار وکړو ، د خپل ورور لاس ونیســو، د خپل ورور غم و خورو، د خپل ورور مشــکل حل کړو، د خپل ورور پر ســتونزو ځــان خبر کړو او د هغــه هره ســتونزه د ځان ســتونزه وبولو، ځکه روژه د برکتونو میاشــت ده. موږ باید هڅه وکړو ترڅو په دې میاشــت کې ثوابونه خپل کړو، په دې میاشت کې بېوزلو، محتاجو او اړمنو کســانو او کورنیو ته صدقه یا خیرات ورکــړو ، ځکه صدقــه او خیرات له غــوره عبادتونو څخه ګڼــل کېږي او د الله د رضاء د لاس ته راوړلو ســبب ګرځي، رسول الله صلي الله علیه وسلم فرمایلي: په پټه خــیرات کول د الله د غضب مخه نیــسي. (صحیح بخاري)، په بل حدیث کې رســول الله صلي الله علیه وسلم داسې فرمایلي: خیرات کول ګناهونه داســې محو کوي، لکه اوبه چې اور محو کوي.

زیــد بن خالــد رضي الله عنــه وایي: رسول اللهﷺ فرمایلي دي: هغه څوک چې یو روژه دار ته روژه ماتی ورکړي د دې کــس اجر هم د هغــه روژه دار هومــره دی بغــیر د کوم کمــوالي نه) ترمذي.

د هغــو کســانو د زړه لاس ته راوړل چې له شک پرته په هغو کې د خدای جل جلاله رضایــت دی، له لوی اجر او ثــواب څخــه بــه برخمن شــو. د مسکینانو د ستونزو هوارول او یتیمانو ته خندا وربښل د هر مسلمان مکلفیت دی. که د دې مبارکې میاشــتې په هره ورځ کې موږ له بېوزلو سره د مرستې هوډ ولرو، ښکاره ده چې ټولنه به مو لــه فقر او بېوزلۍ څخه وژغورل شي، ځکه د یو انســان په بل انســان باندې مهرباني د الله تعالــی د مهربانۍ لپاره یوه انګېزه ده. لازمه ګڼو چې ایماندار، خیرپال، شتمن...

ص۳

# ۲۴ حوت!

**روان**

قبـل از همه، درود بر ارواح شـهدای بیسـت و چهارم حوت هرات !

بیست و چهارم حوت بود !

روزی که بروت کشـالان مارکس پرسـت خلق و پرچم،

به خاطر خوشـخدمتی به کرملین

و ایدیولوژی غیر علمی آن

در یک روز،

در یک شهر ( هرات )،

بیشـتر از ۲۴۰۰۰ تن هموطن ما را با داس روسـی سر بریدند، اما امروز،

تمام اعضای کمیته مرکزی حزب شـان،

همراه با کمونسـتچه های خرد و ریزه دیگر

با فامیلها و دار و دسته شان،

در آغـوش اسـتخباراتی امپریالیـزم و کاپیتالیزم غرب لم زده اند !!

بیسوادان مارکسیست !

اقلاً به عوض کشـورهای غربی و فیودال، به یک کشور شرقی میرفتید !

ان شعارهای تان یاد تان رفت :

[[ مرگ بر امپریالیزم

مرگ بر کاپیتالیزم

مرگ بر ارتجاع

مرگ بر امریکا

و... ]]

بلی !

خود فروشـان، هر وقت و هر کجا خود فروشـی می‌کنند !

بیسوادی بد چیز است .

هـمان: (( گاه در آغوش این، گاه در آغوش آن ))

گاه در آغـوش شرق، گاه در آغوش غرب !

پـس در پهلـوی وطنفروشـی، خودفروشـان هم بودند و شدند !!

و این را در قاموس معاصر سیاسـی ( روسپیگری سیاسی ) میگویند .

شرمنده بـاد آنانی که با تخدیـر ایدیولوژی‌های پوچ،

موجب رنـج و عذاب نیـم قرن زندگـی مردم ما شدند

و سرانجام، خود را هـم در میدان ذلت و فروش قرار دادند

و هنوز هم شرم ندارند

و هنوز هم زنده اند

و گاهگاهی در تلویزیونها هم ظاهر میشـوند

و چرند پخش میکنند

و بزله میگویند !!

# تلاش‌های مضاعف برای گسترش و توسعه خطوط ریلی

**احمد**

درجهانی که مـا زندگی می کنیم، بخـش اعظـم از پیشرفـت هـا، محصول ارتباطات و تجارت است که این پیشرفت ها اغلباً از طریق حمل و نقل هوایی، بحری و زمینی به دست آمده است.

بنابرین در میان سیستم های حمل و نقل، این اخـتراع خطوط ریلی بود کـه در اوایل قـرن نوزدهم، منجر به انقلاب صنعتی نخست در انگلستان، سـپس در اروپا و بعداً درامریکا شـد و جهان به ارزش و اهمیـت، ریل پی بـرد و اقدام به احداث و توسـعه خطوط آهن کـرد و امروز کمتر کشـور ی را در جهـان سراغ داریم که دارای سیسـتم و شـبکه خطـوط ریلی نباشد، زیرا انواع شبکه های ریلی در داخل کشور ها گسترش یافته و از این طریق، با کشور های دیگر نیز متصل می باشند که حمل و نقل مسافران به ویژه کالا های تجاری از طریق خطـوط ریلی انجام می شود.

اگر چه علیرغم توسعه و پیشرفت مسـیر حمل ونقل دریایی و هوایی کـه بخش عمـده تجـارت از این طریـق صـورت می گیـرد، اما با آن هـم خطوط ریلـی، اهمیت و ارزش خـود را از دسـت نـداده، بلکه ضرورت و اهمیتش هر روز بیشتراحساس می شود.

روی این اسـاس امـروز درجهان پیرامون توسعه و گسترش خطوط ریلـی سرمایه گذاری های وسـیع انجام می شـود، اما باتأسـف باید گفـت که بـا گذشـت دو قرن از اخـتراع و اسـتفاده شـبکه های ریلـی در جهان و سرازیر شـدن میلیاردها دالر در بیست سال پسین در افغانسـتان، هنـوز کـه هنوز است، این کشـورخطوط ریلی را تجربه نکرده اسـت. خوشبختانه بعد از حاکم شـدن امارت اسلامی در افغانسـتان این نظـام، توجهی ویژه به زیرساخت ها به خصوص توسـعه و گسـترش خطوط ریلی نمـوده و در این رابطه، مسـئولان امـور سـفر هـای زیـادی را به کشورهای همسایه و منطقه انجام داده اند.

به تازگی وزارت فواید عامه کشور اعـلام کرده که سـه تفاهمنامه به ارزش مجموعی هفت میلیون دالر برای توسعه خطوط آهن با کشور ترکمنسـتان امضـا کرده اسـت. این تفاهمنامه ها در جریان سـفر هیئت امارت اسلامی به ترکمنستان به امضا رسیده اند. گفتنیست ...

ص۳

# ادعای پوچ پاکستان

**ربانی**

منیر اکرم نماینده دائمی پاکسـتان در سازمان ملل میگوید که قطعنامه ای را علیه امارت اسلامی و هند به دلیل حمایت ازتروریسـم به این سازمان ارائه خواهد کرد.

اما باید بدانند که همه کشـور های جهان از ایـن موضوع آگاهی کامل دارند که امارت اسلامی افغانستان به تمام تعهداتـش در زمینه های مبارزه علیه تروریسم، تولید مواد مخدر و ایجاد فضای امن و جلوگیری از هر نوع تهدید از خاک افغانستان علیه کشـور های منطقه و جهان متعهد است.

این موضوع بار ها به گونه مستقیم و غیر مستقیم توسـط سازمان های مختلف ملی و بین المللی مورد بررسی قرار گرفته و نتایج آن مثبت توصیف شده است.

در ضمن با انـدک توجه به شرایط امنیتی و پشرفـت های دیپلوماتیک امارت اسلامی افغانستان قطعیت این موضوع ثابت شده است؛ اما مقامات پاکستان با توجه به مشکلات مرزی چند روز اخیر در تلاش اند تا از راه دیپلوماتیک جایگاه امارت اسلامی را تضعیف نموده و مسئولیت مشکلات داخلی خودشان را از جمله حملات آزادی خواهان موسوم به ارتش آزادی بخش بلوچ را که چندین سـال می شـود با آن دست و پنجه نرم می کند به دوش امارت اسـلامی افغانسـتان بیاندازد، که این واکنش ها بصورت واضح برخلاف روابط دیپلوماتیک، همسایه داری، دوستی و حسن نیت میان دو کشور است.

برای مقامات پاکستان بهتر آن است که توجه خـود را بـه موضوعات داخلی و حل مشـکلات خودشـان معطـوف نمایند تـا اینکه بـا ادعا های پوچ و بی اسـاس، دوسـتی و روابط دیپلوماتیک امارت اسـلامی افغانسـتان و پاکسـتان را مخدوش سازند.

# افغان اعلانات



## اعلان دعوت به جلسه استماعیه

به اطلاع شرکت محترم ساختمانی سندریلا دارنده جواز نمبر (D-۲۹۰۵۷) رسانیده می شود که مطابق ماده چهل و نهم قانون تدارکات محرومیت شرکت محترم از طرف شاروالی محترم کابل، به دلیل عدم ایفای تعهدات مندرج قرارداد پروژه ساخت و نصب ۸ باب پُل هوایی عابر پیاده رو (فاز دوم) در نواحی مختلف شهر کابل مطالبه شده است، با وجود ارسال مکتوب و تماس های مکرر تیلفونی، مسئولین شرکت مذکور به ریاست تدارکات ملی، ریاست عمومی اداره امور ۱.۱.۱ حضور نیافته اند، لذا رئیس، معاون و یا نماینده با صلاحیت شرکت متذکره از تاریخ نشر این اعلان الی مدت (۵) پنج روز کاری به ریاست تدارکات ملی حضور یابد، در غیر آن مطابق به مفاد قانون و اسناد موجوده در مورد تصمیم اتخاذ، آنگاه حق شکایت را نخواهند داشت.»

ریاست تدارکات ملی قبلاً از همکاری شما اظهار امتنان میدارد.

## اطلاعیه مفقودی

یک جلد جواز سیر موتر دارای پلیت نمبر ۳۵۴۸ از وزارت انکشاف دهات در پروسه لیلام خریداری شده مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۷۹۲

## اطلاعیه مفقودی

یک قطعه زوجیت خط شرعی محترم الماس فرزند سید آغا و محترمه معصومه بنت سید جلال مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشند.
۹۷۷۰

## د داوطلبیو اعلان

د کابل ولایت د کانونو ریاست په پام کې لري چې د قرار داد د عقد په موخه ساختماني کاني موادو لاندې ساحې د دوه کالو لپاره په قرار داد ورکړي

| شماره | ولایت | ولسوالي | د ساحې نوم | د موادو ډول | مساحت دساحې |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ۱ | کابل | بګرامي | کوه کمري | جغل خاکدار | ۴۵۵۸.۴ |

ټول داوطلبان کولای شي چې د ګډون په موخه خپله درخواستي له ۱۴۰۳/۱۲/۲۱ څخه تر ۱۴۰۳/۱۲/۳۰ پورې د کابل ولایت د کانونو ریاست ته وسپاري او د داوطلبي اړوند فورمې له یاد ریاست څخه ترلاسه کړي.

د یادو اجازه نامې فیس پنځلس زره (۱۵۰۰۰) افغانۍ او د ژوند چاپیریال ساتنې ضمانت یې څلویښت زره (۴۰۰۰۰) افغانۍ او د حسن اجرا ضمانت یې د یوې ربع په اندازه دي.۹۷۸۸

---

### له اړمنو کسانو...

او هغه مسلمانان چې زیات مالي امکانات او پیسې لري، په دې له فضیلت څخه ډکه میاشت کې بېوزلو، محتاجو، کونډو، یتیمانو او معلولینو سره مرستې ته په صداقت او ایمانداری ورودانګي او خپل دیني او انساني مکلفیتونه ترسره کړي. راځئ چې د خپل آخرت د کر حاصل په همدې همپالنې او همکارۍ سره زیات کړو.

### تلاش های مضاعف...

که این تفاهمنامه ها شامل توسعه ایستگاه تورغندی _هرات ، ۱۰ کیلومتر باقی مانده از خط آهن آقینه _ اندخوی، همچنان بررسی وطراحی تفصیلی ۵۵ کیلومتر خط آهن اندخوی _شبرغان، می باشدبه باور مقام ها در این وزارت در آینده نزدیک، قرار داد های اجرایی این پروژه ها میان امارت اسلامی و ترکمنستان نیز به امضا خواهد رسید.

مسلماً این گام ها بخشی از تلاشهای وزارت فواید عامه برای گسترش و توسعه پروژه های ریلی در افغانستان است، زیرا پیش از این نیز رسانه ها از سفرهای هیئت این وزارت به کشور های اوزبیکستان، ترکیه و جمهوری اسلامی ایران، جهت توسعه حمل و نقل ریلی خبر داده بودند که این خود نشاندهنده تلاشهای این وزارت بخاطر توسعه و گسترش خطوط ریلی با کشور های همسایه و منطقه است.

هرچند افغانستان هنوز فاقد شبکه حمل و نقل ریلی داخلی می باشد، اما در بعد منطقوی الحمدلله امروز با سه کشور همسایه، اوزبیکستان، ترکمنستان و جمهوری اسلامی ایران از طریق خط آهن وصل است وامید واریم که در آینده با تمام کشور های منطقه و جهان نیز از این طریق وصل شویم.

از اینرو این تلاش ها، امید را باور می سازد و آن روز دور نخواهد بود که مشکلات مردم افغانستان از ناحیه نبود خطوط ریلی بر طرف شود تا تجارت و ارتباطات که رکن اساسی در توسعه و رفاه کشور محسوب می شود از طریق خطوط ریلی سهل و آسان گردد تا با کمترین زمان و هزینه بتوانیم کالا های تجاری و ترانزیتی را به کشور های منطقه و از آن طریق به جهان صادر و وارد کنیم .

### هرات کې...

د هغه وخت د رژیم له غبرګون سره مخ شو، چې په کې د هوايي بریدونو په ګډون ډول ډول وسلې وکارول شوې. که څه هم تر اوسه پورې هېڅ رسمي چارواکي په دې ولسي پاڅون کې د شهیدو شویو شمېر نه دي تأیید کړی، خو عموماً داسې انګېرل کیږي ،چې په دې ورځ او وروسته زرګونه خلک په توقیف ځایونو او زندانونو کې شهیدان شول، یا د هرات په شمال کې په ډلهییزه توګه تر خاورو لاندې شول.په ورته وخت کې، د هرات د ګازرګاه لوی جومات خطیب، فضل الرحمن انصاري ویلي ،چې د حوت په ۲۴مه د هرات د خلکو پاڅون نه یوازې یوه تاریخي پیښه وه، بلکې نړۍ ته یو څرګند پیغام هم و، چې دا خاوره به هیڅکله تسلیم نشي. ده د افغانانو قربانیو ته په اشارې سره ویلي: دا ملت د هر ډول تیري په وړاندې په میړانه ولاړ دی او تاریخ یې له قربانیو ډک دي. ده زیاته کړې ،چې اسلامي امارت تل تاریخي ورځو ته درناوي او ارزښت ورکړی دی.

### د تاجکستان...

افغانستان اسلامي امارت تل د سولې، تفاهم او د سیمهییزو همکاریو د پراختیا ملاتړ کړی او باور لري، چې دغه تړون به په منځنۍ اسیا کې د دوامداره سولې او همکارۍ یو نوی باب پرانیزي.

### د افغانستان...

محمد یوسف وفا په دې لیدنه کې ویلي، چې د صنعت او سوداګرۍ د پرمختګ لپاره باید په حیرتان بندر کې د کرنیزو محصولاتو په ځانګړې توګه د سبزیجاتو او مېوو د بستهبندۍ او مینځلو یو مرکز جوړ شي. په ورته وخت کې اکباسوف ویلي: قزاقستان غواړي د افغانستان له لارې له سویلي اسیا، روسیې، پاکستان او هند سره خپلې اړیکې پیاوړې کړي او په دې اړه څو پروژې پلي کوي.

### د لغمان د...

زیاتوالي ښيي. نوموړي د عوایدو د زیاتوالي اساسي لامل په اداره کې شفافیت یاد کړي دي.

بل لور ته د لغمان ولایت موټر چلوونکي وايي چې اوس مهال د ترانسپورټ آمریت چارې منظمې شوي، موټرو ته پر وخت پارچه ورکول کیږي او عواید په منظم ډول راټولیږي.

### له ۲۶میلیونو...

د سیمکارتونو د بیا ثبتولو بهیر دوام لري. ده لیکلي: ((یو څه چې د یادولو وړ دي هغه د سیمکارتونو د ثبت او راجستر کولو پروسې لپاره د سیستم جوړول و، چې دا سیستم هم د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت د انجنیرانو او متخصصو کادرونو په توسط جوړ شوي چې عملاً ترې ګټه اخیستل کیږي، چې دا په ټکنالوژۍ کې د وزارت د مسلکي کادرونو لوړ ظرفیت ښيي.)) د اسلامي امارت کابینې د ۱۴۰۰ ل کال د سلواغې میاشت کې د سیمکارتونو د بیا ثبتولو بهیر د پیلولو پریکړه وکړه، خو د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت د روان ۱۴۰۳ لمریز کال په پیل کې د سیمکارتونو د بیاثبت بهیر د کابل په ګډون ټولو ولایتونو کې پیل کړ. د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت د معلوماتو له مخې، هېواد کې د ټولو فعالو سیمکارتونو له ډلې ۱۰میلیونه سیمکارتونه د مکالمو د خدمتونو او ۱۳میلیونه نور د انټرنېټي خدمتونو لپاره کارول کیږي. اوسمهال هېواد کې پنځه شرکتونه خلکو ته د ګرځنده تېلفونونو له لارې د مخابراتي خدمتونو د وړاندې کولو په برخه کې فعالیت کوي.

### فراه کې...

وګړو څخه د تفریحي پارکونو د ساتنې په برخه کې د همکارۍ غوښتنه کړې او د دغه ریاست د سمسورتیا مدیریت ته یې دنده سپارلې، ترڅو د ښار په بېلابېلو برخو کې تفریحي پارکونو ته پاملرنه وکړي او یاد پارکونه د خصوصي سکتور له لوري د ښکلا په ونو، برېښنايي سیستم او دوامدارو اوبو باندې سمبال او هر اړخیزه پالنه يې وکړي. بله خوا ښاري اوسېدونکي هم د ښاروالۍ ریاست د دې اقدام او پلان تود هرکلی کوي او وايي چې دغه پارک به د ځوانانو د ساتېرۍ ترځنګ د دوي لپاره ارام چاپیریال هم رامنځته کړي.

### ننګرهار کې...

په لګښت د ۸۰ مترو په اوږدوالي او د ۸ مترو په سور سره د یوه واش د پخولو چارې بشپړې شوې دي. ورته مهال د سیمې اوسېدونکو د یاد واش د بیارغونې له امله خوښي څرګنده کړه او له ښاروالۍ څخه یې د ورته نورو انکشافي پروژو د پلي کېدو غوښتنه کړې ده.

### لوګر کې...

نړیوال سره صلیب فدراسیون په همغږۍ او د جاپان هېواد په مالي ملاتړ برابر شوي. د نوموړي په وینا: د دې پروژې ارزښت نږدې ۱.۶ میلیونه افغانۍ دي، چې پر ۶۰۰ بڼوالو (هر یو ته ۵۰ نیالګي) وېشل شوي دي. ورته مهال د لوګر د سرې میاشتې رئیس مولوي میرهاشم حزبالله وایي، چې په یادو نیالګیو کې بادام، منه، آلو، فارموسات او زردآلو شامل دي.بڼوال به له نیالګیو کېنولو وروسته د بڼوالۍ اړین وسایل، کیمیاوي سرې، درمل او روزنیز ورکشاپونه هم ترلاسه کړي. محمد نذیر، اسدالله او سید محمد چې د څرخ ولسوالۍ بڼوال دي، د دې نیالګیو له ترلاسه کولو خوښي څرګندوي او وايي، چې د څرخ ولسوالۍ اقلیم د کرنې او بڼوالۍ لپاره ډېر مناسب دی او د دې نیالګیو پر مټ به په سیمه کې سلګونه جریبه نوي بڼونه جوړ شي.

### کابل کې...

په کابل کې ۱۶۵ پراختیایي پروژې د ۶.۴ میلیاردو افغانیو په ارزښت تر کار لاندې دي چې لګښت یې د کابل ښاروالۍ له داخلي عوایدو څخه تمویلیږي. د بارکزي په خبره: له یادو پروژو څخه ۸۹ یې د سړکونو د جوړولو وې چې د ۸۲ پراختیایي پروژو کارونه عملاً جریان لري او د راتلونکي کال په پیل سره به نورې پراختیایي پروژې هم تر کار لاندې ونیول شي. همداشان د درېو کلونو په لړ کې د کابل ښاروالۍ له لوري په کابل کې له ۲۷۰ کیلو مترو څخه زیات نوي سړکونه جوړ شوي دي او هڅه کیږي چې ورته کړنې همداسې دوام ومومي. د نوموړي په وینا: د ښاري ښکلا په برخه کې مو ۳۰ څلور لارې د هېواد کلتور او اسلامي ارزښتونو ته په کتلو سره جوړې کړې دي. همدارنګه د سړکونو پر غاړه د کتارو جوړولو په لړ کې د زرنګار پارک، فروشګاه، پل باغ عمومي او د پوهنې وزارت مخې ته په ټاکلو ځایونو کې لګول شوي دي. دغو سیمو کې د خلکو بیرو بار زیات وي چې وخت نا وخت د ترافیکي ګڼې ګوڼې لامل کیږي، نو په دې لارو کې له سړکونو اوښتل د ښاري فرهنګ نښه نه ده او هېوادوال دي له زېر زمینیو او یا هم له هوايي پلونو په دغو سیمو کې کار واخلي. کتارې د ۳.۵ کیلو متره اوږدوالي او ۱.۲ متره په سور سره جوړیږي او هېوادوال دي د ساتنې په برخه کې د کابل ښاروالۍ همکار واوسي.

### زیارمل هوتک

### کابل کې د خبریال...

ده زیاته کړه: په هېواد کې د خبریالانو مسلکیتوب ته باید جدي پاملرنه وشي، څو اطلاعات په کره، معیاري او ښه ډول خلکو ته ورسول شي. د غونډې نورو ویناوالو د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت څخه غوښتنه وکړه، د هغو بنسټونو مخنیوی وکړي، چې د پیسو ګټلو په موخه د خبریالۍ لنډمهالي کورسونه دایروي او د خبریالانو په نوم رسنیز ډګر ته غیر مسلکي کسان وړاندې کوي.د یادونې وړ ده، چې د دغې غونډې په پای کې د باختر اطلاعاتي اژانس د دوو خبریالانو په ګډون یو شمېر خبریالان او د رسنیو استازي په ستاینلیکونو ونازول شول.

### هیواد کې...

هر صنعتکار چې له غوښتنلیک سره خپل سوداګریز پلان، د غوښتل شوې ځمکې نقشه، د جواز، تشخیصیه نمبر، او شرکت د رئیس او مرستیال د برقي پېژندپاڼو د کاپیانو ترڅنګ د شرکت فروفایل او بانکي سټېټمېنټ ولري، د وزارت له ارزونې او منظورې وروسته ورته ځمکه ورکول کیږي.

### د مسلمانانو ...

هېواد نوم واخلي ویلي: مونږ د مسلمانانو پر وړاندې د زیاتې کرکې د خپرېدو شاهدان یو. ځینې په ښکاره ډول د دوی عبادت خونو او یو شمېر ځایونو ته سپکاوي کوي او دا له بشري حقونو څخه ښکاره سرغړونه ده. سرچینې ویلي: په دې وروستیو کې د بشري حقونو څارونکو معلومات خپاره کړي، چې انګلستان، متحدو ایالاتو، هند او نورو هېوادونو کې د مسلمانانو په وړاندې زیات سپکاوي او کرکه خپره شوې ، خو په ښکاره دغه هېوادونه بیا د کرکې خپروونکو په وړاندې د خپلې مبارزې ملاتړ کوي. راپور کې د بشري حقونو د څارونکو له قوله راغلي: د طوفان الاقصي له عملیاتو وروسته مونږ د اسلام ضد، عرب ضد او یهودو ضد ډېر د تعصب د خپرېدو شاهدان یو.انتونیو ګوتریش د دغې ستونزې د مخنیوي په تړاو ویلي: راځئ چې د یووالي او د بشري او انساني کرامت د ساتنې لپاره ګډ کار وکړو.

### د نیمروز...

او د دولت خزانې ته سپارل شوي دي. نوموړي زیاته کړه، چې سږ کال ۱۱۲۸ موټر چلوونکو ته لایسنسونه او ۳ زره ۲۷۰ جوازسیرونه وېشل شوي، همداراز ۴۴ ترافیکي پېښې څېړل شوي او د پېښو د ښکمنو کسانو قضیې محکمې ته سپارل شوې دي.

### د راتلونکي کال...

روغتونونو د چارو پر څرنګوالي لازمې لارښوونې او سپارښتنې وکړې. مولوي نور جلال جلالي د اختر د را رسېدو په مناسبت ټولو ولایتي رئیسانو ته لارښوونه وکړه، ترڅو هېوادوالو ته د روغتیایي خدمتونو وړاندې کولو په برخه کې لا زیاتې اسانتیاوې رامنځته او د اختر په ورځو کې روغتیایي مراکز فعال وساتي. همدارنګه نوموړي د ساري ناروغیو پر وړاندې د مبارزې پر لا ښه والي او د واکسیناسیون پروګرام پر ښه پلي کېدو ټینګار وکړ. بل لور ولایتي رئیسانو د عامې روغتیا وزارت رهبرۍ ته د ولسوالۍ د کچې عمومي روغتونونو کې په غوره توګه د لومړنیو چارو د پر مخ بېولو ډاډ ورکړ او هم یې په دې برخه کې شته پوښتنې شریکې کړې، چې د تخنیکي ټیم له لوري معلومات ورکړل شول. د عامې روغتیا وزارت د روغتیایي خدماتو د وړاندې کولو مرستیال ښاغلي مولوي عبدالولي حقاني هم د غونډې په پای کې د روغتیایي خدماتو اړوند، د درملو د تر لاسه کولو او د عمومي روغتونونو اړوند خپلې سپارښتنې ولایتي رئیسانو سره شریکې کړې.

### د میدان وردګو...

د مبارزې ریاست ودانۍ څه موده وړاندې منظوره او اوس یې عملي کارونه پیل شوي دي.

### د غزني ـ ښرنې ...

به د غزني - ښرنې د برښنا لین د فني او عملي وضعیت د ارزونې لپاره ساحوي لیدنه هم وکړي.

### د خوست ځاځي...

په یادو ناروغانو کې ښځې او ماشومان هم شامل وو. د نوموړي په وینا، د ډاکټرانو ټولنه پلان لري چې راتلونکي کې به د دغه ولایت په نورو لرې پرتو ولسوالیو کې هم دا ډول روغتیایي کمپونه جوړ کړي.

### آغاز دروس...

خوب میخواهیم که باید جوانان ورزشکار را در مرکز و ولایات تربیت کرده تا شاهد تغییر مثبت دربخش فوتبال و فوتسال در سطح ملی و بین المللی بیشتر باشیم.

**محمد رفیع تیموری**

### تورخم کې مو ...

نږدې ۵۰ لارۍ هم شاملې دي. دا په داسې حال کې ده، چې د پاکستان د بهرنیو چارو وزارت خبرداری ورکړی، چې تر هغه وخته به تورخم بندر خلاص نه کړي، تر څو د افغان حکومت له لوري د تاسیساتو جوړول ونه درول شي.

### ننګرهار کې...

ذخیره جوړه او د ۹.۵ کیلومترو په اوږدوالي به ترې پایپ وغځول شي. د سیمې اوسېدونکو د یادې شبکې په جوړېدو خوښي ښودلې او وایي، چې په دغې پروژه کې ورته د کار زمینه برابره او د څښاک د اوبو شته ستونزې به یې حل شي.

# Hewad Daily

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
داړیکو شمېره: ۰۲۰ - ۲۵۲۶۳۴۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایټ: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

**یکشنبه درمضان المبارک۱۶مه ۱۴۴۶ق کال** د ۱۴۰۳ ل کال د کب ۲۶مه د 2025 م کال د مارچ 16مه


## هیواد کې د صنعتي پارکونو لپاره د ځمکو د وېش لړۍ روانه ده



د صنعت او سوداګرۍ وزارت وايي: صنعتکارانو ته په هېواد کې د صنعتي پارکونو د ځمکو د وېش په تړاو د امیرالمؤمنین (حفظه الله ) فرمان توشیح شوی، چې دې وزارت ته د ځمکو له تسلیمېدو وروسته به پر صنعتکارانو ځمکې ووېشي. ها خوا د صنعتکارانو ټولنه د هېواد د صنعت د پیاوړتیا په برخه کې د صنعتي ځمکو وېش ګټور او د وخت اړتیا بولي.
دوی وايي: ځومره ژر چې کېدای شي د صنعتي ځمکو د وېش لړۍ دې پیل شي، چې په دې سره به د صنعتکارانو ستونزې هوارې شي.
دغه راز د صنعت او سوداګرۍ وزارت زیاتوي:...**۳مخ**

انتونیو ګوتریش:

## د مسلمانانو پر ضد دوه ګونی چلند زیاتېږي



د ملګرو ملتونو عمومي منشي انتوني ګوتریش پرون په ټوله نړۍ کې د مسلمانانو په وړاندې تعصب او له دوی سره د دوه ګوني چلند د زیاتوالي خبر ورکړی او د ټولنیزو رسنیو له مسئولینو یې د مخنیوي غوښتنه کړې.الجزیرې ټلوېزیون د ګوتریش له قوله لیکلي: نومورې پرته له دې چې د کوم ځانګړي...**۳مخ**

## د میدان‌وردګو له پېښو سره د مبارزې ریاست ته ودانۍ جوړېږي



د میدان‌وردګو د پېښو پر وړاندې د مبارزې ریاست مسئولین وايي چې د دغه ولایت له طبیعي پېښو سره د مبارزې ریاست ته د ۱۳میلیونو افغانیو په ارزښت د ودانۍ د جوړېدو چارې پیل شوې.
د دغه ولایت د طبیعي پېښو پرضد د مبارزې رئیس مولوي فیض‌الله جلالي رسنیو ته وویل: دغه ودانۍ په دوه پوړیز ډول د ۱۳میلیونو افغانیو په مالي لګښت د راتلونکو شپږو میاشتو په موده کې له طبیعي پېښو سره د مبارزې وزارت په مالي لګښت جوړېږي. نوموړي زیاته کړه: د یادې ودانۍ په جوړېدو سره به د میدان‌وردګو د طبیعي پېښو پرضد د مبارزې ریاست د کارکوونکو شته ستونزې هوارې شي او ولس ته به غوره خدمات وړاندې کړي. هېره دې نه وي چې د میدان‌وردګو د طبیعي پېښو پر وړاندې...**۳مخ**

## د غزني والي: د راتلونکي کال لپاره دې د دې ولایت روغتیایي بودیجه زیاته شي




د عامې روغتیا وزیر مولوي نور جلال جلالي د هېواد د۳۴ولایتونو د عامې روغتیا له رئیسانو سره د ولسوالیو د کچې عمومي روغتونونو د جوړېدو د چارو پر څرنګوالي، د کوچني اختر په ورځو کې د روغتیایي خدماتو د فعال ساتلو او د ساري ناروغیو د مخنیوي اړوند انلاین خبرې کړې دي.
په دې لیدنه کې د عامې روغتیا وزارت د روغتیایي خدماتو وړاندې کولو مرستیال مولوي عبدالولي حقاني هم شتون درلود.
د عامې روغتیا وزیر د ولسوالیو د کچې عمومي...**۳مخ**

## د نیمروز د ټرافیکو مدیریت څه باندې ۳۲ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي

د نیمروز ولایت د ټرافیکو مدیریت مسئولین وايي، چې یاد مدیریت سږکال څه باندې ۳۲ میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي دي. د یاد ولایت د امنیې قوماندانۍ د ټرافیکو عمومي مدیر مولوي سمیع‌الله جبیر باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي چې د جوازونو او جوازسیرونو د وېش او د اړوندو خدمتونو له لارې ۳۲ میلیونه ۲۶۷ زره ۱۱۳ افغانۍ عواید راټول...**۳مخ**

## کندز کې د یوه پله رغنیزې چارې پیل شوې

د ټولګټو وزارت له لورې د کندز ولایت اړوند د (ایرګنک سړک) پل چې د کندز-بلخ عمومي سړک پر مسیر موقعیت لري د پاتې برخو د رغونې کار یې د نهه میلیونه او ۷۰۵ زره افغانیو په ارزښت له خصوصي شرکت سره قراداد شوي دي، چې دا مهال یې کار عملاً پیل او د درېوو میاشتو په موده کې به بشپړ او ګټې اخیستنې ته به وسپارل شي. یاد پل چې ۴۸.۵ متره اوږدوالي او ۱۲متره پلنوالي لري، رغنیزې چارې یې د تېرې اداري پرمهال د ټولګټو وزارت له لوري پیل شوې وې، چې د بېلابېلو عواملو له امله یې کارونه ځنډېدلي وو او د ټولګټو وزارت د کندز ولایت د اوسېدونکو د تګ راتګ ستونزو ته په کتو د دغه پله رغنیزې چارې بیا پیل کړې دي، چې په بشپړېدو سره به یې د کندز - بلخ پر لویه لاره د تلونکو مسافرو د تګ راتګ ستونزې د پخوا په پرتله هوارې شي.




## د غزني - ښرنې د برښنا پروژې د پرمختګ ارزونه وشوه

د غزني د برښنا حوزې د نشراتو مدیریت وايي، چې د غزني د برښنا رئیس حافظ نصیر احمد توکلي د ملګرو ملتونو د پروژو د خدمتونو دفتر (UNOPS) یو پنځه کسیز پلاوي سره کتلي دي.
یاد مدیریت وايي: په دې ناسته کې دغه پلاوي د غزني - ښرنې د برښنا د لېږد پروژې په تړاو د خپلې ارزونې موخې بیان کړې او د پروژې د بشپړو شویو او پاتې چارو راپور یې غوښتې دي.
د معلوماتو له مخې، د برښنا د لېږد شبکې او د تاسیساتو یوه برخه بشپړه شوې؛ خو د لین ځینې برخې لا هم تر کار لاندې دي . یاده دې وي، چې دغه پلاوي...**۳مخ**

## د خوست ځاځي میدان ولسوالۍ کې د سلګونو ناروغانو وړیا درملنه شوې

د خوست د ډاکټرانو او درملو ټولنې مسئولین وايي چې پرون یې د خوست لرې پرتې ځاځي‌میدان ولسوالي کې، د سلګونو ناروغانو وړیا درملنه کړې ده. د یاد وړیا روغتیایي کمپ جوړوونکي وايي: یاد کمپ کې د خوست له مرکز څخه شاوخوا ۱۰۰ ښځینه او نارینه متخصصو ډاکټرانو ګډون درلود چې د یادې ولسوالۍ د سلګونو ناروغانو وړیا درملنه یې وکړه.



د خوست د ډاکټرانو ټولنې مشر ډاکټر عبدالحکیم ځدراڼ وايي ،چې...**۳مخ**

دبلیو .ایف. پي:

## تورخم کې مو پر خوراکي توکو بار ۵۰ لارۍ ایسارې پاتې دي

د تورخم بندر د تړل کېدو دوه ویشت ورځې پوره شوې، خو تر اوسه د اسلامي امارت او د پاکستان د استازو ترمنځ مذاکراتو کومه مثبته پایله نه ده ورکړې. ورته مهال د ملګرو ملتونو د خوړو نړیوال پروګرام ویلي،چې د تورخم بندر د تړل کېدو له امله یې پر خوراکي توکو بار۵۰ لارۍ د تورخم هغې غاړې ته په پېښور کې ایسارې پاتې دي. د خوړو د نړیوال پروګرام د اړیکو مسئول، ضیاءالدین صافي ویلي، چې تورخم بندر د فبرورۍ له ۲۱مې راهیسې د هر ډول تګ راتګ پر وړاندې تړلی دي. زرګونه لارۍ دواړو لورو ته درول شوي، چې په دې کې د خوړو نړیوال پروګرام...**۳مخ**

## آغاز دروس مربیگری از سوی فدراسیون فوتبال

ریاست عمومی المپیک، تربیت بدنی و ورزش کشور کورس مربیگری سطح D رابه همکاری و حمایت فدراسیون ملی فوتبال افغانستان و فدراسیون فوتبال ولایت کابل و به اشتراک ۳۴ مربی از زون های مختلف ولایت کابل برای مدت یک هفته آغاز کرد. محمد یوسف کارگر رئیس عمومی فدراسیون ملی افغانستان گفت که در این کورس مربیان اشتراک کننده موضوعات مختلف از جمله مبانی مربیگری فوتبال، آشنایی با تکنیک‌های پایه‌ای فوتبال، تاکتیک‌های ساده تیمی، آشنایی با رشد و توسعه بازیکنان جوان و قوانین بازی و داوری ابتدایی فوتبال را توسط یازده مدرس این رشته از مرکز و ولایات و تحت نظارت فدراسیون ملی فوتبال فرا خواهند گرفت. وی اضافه کرد که مدرسین سطح B فوتبال آسیا برای ۳۴ تن مربیان مرکز و ولایات کشور به مدت یک هفته تدریس خواهد کرد و از این تعداد مربیان که لیسنس D به تعداد ۲۴تن برای FIFA و AFC معرفی خواهدشد. فرید احمد یوسفزی رئیس فدراسیون فوتبال ولایت کابل اظهار کرد که برای رشد هرچه بیشتر فوتبال کشور مسئولین اداره ورزش تلاش بیشتر کرده تا دستاورد عالی در زمینه داشته باشند. حامد میوند مسئول دایرکترتخنیک فوتبال افغانستان از مربیان خواست که بعد از فراگیری این کورس کار و دستآورد...**ص۳**



## ننګرهار کې سلګونو کورنیو ته د څښاک اوبه برابرېږي

د ننګرهار ولایت د کلیو د بیارغونې او پراختیا ریاست مسئولین وايي، چې د دغه ولایت په پچیراګام ولسوالۍ کې د څه باندې ۵ میلیونو افغانیو په لګښت د اوبو رسولو د یوې شبکې د جوړولو چارې پیل شوې دي. د ننګرهار ولایت د کلیو د بیارغونې او پراختیا ریاست رسنیز دفتر باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د دغه ولایت د پچیراګام ولسوالۍ په پاس پچیر مغل خېلو ډاګ سیمه کې د (اي. سي. ایچ. او) موسسې په مالي ملاتړ د ۵.۵ میلیونو افغانیو په لګښت د اوبو رسولو د یوې شبکې د جوړېدو چارې پیل شوي، چې پر مټ به یې ۳۵۰ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرې شي.
سرچینې زیاته کړې، چې د اوبو رسولو دا شبکه د یوې چینې له اوبو تغذیه کېږي، چې د ۶۰ متره مکعبو په ظرفیت د پاکو اوبو یوه...**۳مخ**

